


د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه




په انټرنېټ کې په ليکه کوونکی :

سمسور حبيبي

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

# ډالـــۍ

دا کـتـاب هغـو دوو ګـرانو او زړه تـه راتـېرو ګلانو تـه ډالـۍ کـوم، چـې د یـوه یـې زه د احســان پوروړی یم او د بـل مـې ټول پښتـون قـام:

۱- د هـېواد ســتـر او پـیـاوړي لـیکـوال ، شـاعــر، څـېړونکـــي، ژبـپـوه او روحــــانـي شخــصـیت

**استاد محمداصف صمیم**

تــه

۲- هغـه چـاتـه چـې دا هـر څـه یـې پـه مـا ولـیـکل خـو....

# د کتاب ځانګړنې:

د کتاب نوم: په سترګو کې خبرې
شاعر: فضل هادي (فضليار)
خپرونکی: مومند خپرندویه ټولنه
کمپوزګر: محمدحسيب (انوري)
ډيزاينګر: نجيب الله (نايل)
د پښتۍ او انځورونو ډيزاين: لمر (ککړکی)
د چاپ زيار: شريف الله (ناصري)
د چاپ شمېر: ۲۰۰۰ ټوکه
د چاپ کال: ۱۳۸۶ لمريز

# د ګران فضلیار

# غزلیز نوښتونه

ځيني خلك په دې عقيده ښكاري، چې خپل كلتور او مقدساتو ته سپكاوى او يا ستغې سپورې په ادب كې بغاوت دى، او په دې ډېر خوښ وي، چې د باغي شاعر او ليكوال په نوم وپېژندل شي. حال دا چې د ادب ژبه د هنر ده، او هنر له ښكلا پرته بل انځور نه لري. په سپكو او سپورو كې به جذبه وي، خو هيڅكله ورته فن ويلى نه شو، او نه ښكلاييز ارزښت لري. دغه ډول شعرونه په اصل كې له فكري او ايډيالوژيكي ستونزو نه زېږېدلي ښكاري، او ادبي بغاوت نه دى.

شاعرانه بغاوت به هم له ښكلا او هم له هنره ډك وي. د بېلګې په ډول د شيخ متي بابا نظم د نصر لودي او شيخ اسمعيل د منظومو په وړاندې يو ادبي بغاوت دى. ځكه شيخ بابا په كايناتو كې د لومړي ځل لپاره په سيستماتيك ډول د جمال مشاهده تر سره كړې، او نظم يې له ستر مولانا رومي (رح) سره په سيالۍ د لاهوت په لور په الوت دى. همدارنګه خوشال بابا او بيا ورپسې استاد حمزه دراخله.

خبره به نه اوږدوم، زمونږ د ځوانو شاعرانو ترمنځ د ښاغلي فضليار غزليز نوښتونه ماته يو ډول ادبي بغاوت ښكاره شو، په

دې ډول چې نه يې روايت تېر او تکراري سمبول ګڼلی، او نه يې په فکر د فن ملا ماته کړې، هر خيال ته يې د هنر د ښاپېرو لباس وراغوستی، خو دا فېشن او ارآيش هيڅکله هم پردی نه ښکاري، او نه د چا تقليد دی.

لار يې بېله او ځانګړې ده، له داسې يوه تشخص سره روان دی، چې د پښتون فطرت د رومان پالنې د ستر ذوق استازې کوي:

(د تروو اوبو ماهی) به دومره د چا خوښ نه شي، او نه دغه ترکيب په ړومبيو کې خوږ لګي، خو چې کله ورته شاعر په خپل شاعرانه منطق رنګ اميزي ورکوي، او تصوير ترې جوړوي، کټ مټ د (زشت و زيبا) ادبي صنعت تر پولو رسي:

تــه د تــروو اوبــو مــاهــی يــې د جانــان انځــوره!
تــل مــې د سترګو پـه راڼـه سـمندرګي کې اوســې

او تــر دې يـې دغــه بـل انځــور لا ښکلــی ښــکاري، چــې ملــي احسـاس يــې هــم بدرګــه کــوي:

د يـار وصالـه تــه هـم سـم د خپلواکۍ غوندې يې
مـاتـه، کې نه ښکارې پـه سوري د بري کې اوسـې

او که د همدغـه غـزل پـه يـوه بـل بيـت کـې يـې د (کـم عقـلې) خطاب نـه وی، نـو زمـا غـوندې خـوش بـاورو خلکـو بـه پـه څـه ناڅـه ډول د عـرفـان د وجـودي تـګلارې لاروی ګڼـه:

نورو نـه ولـې ستـا پـوښتـنـه وکـړم وه کم عـقلـې
تـه خـو هر وخت ګوره زمـا پخپـل زړګي کې اوسـې

د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

د کره کتنې په نیت نه خو د نظرماتې په دود به ددې ښکلې غزل یو بل بیت هم په ننبه کړم، چې د جانان خیال پکې له مضر چینجي او سر له وچ لرګي سره تشبیه شوی، چې د شعري توکو له مخې هیڅ ارزښت نه لري، خو څرنګه چې د ښاغلي فضلیار له شاعرانه برلاسۍ او لوړ استعداد نه ښکاري، په ډېرې لږې پاملرنې دغه ستونزه حل کولی شي، او ما ورته هغه د چا خبره ځکه وریاده کړه، چې ډېره ستاینه یې همدلته بریک نه کړي، پرېده چې نور ښه نوښت رامنځته کړي، او دا الهي (ج) قانون هم دی، چې کاینات یې په یو ځل بشپړ او سالم نه دي را استولي، ځکه بیا به زمانه د خلاقیت له جوهره بې برخې شي.

د بل هر لوړ او بااستعداده ویناوال غوندې ښاغلی فضلیار د خپل ځانګړي فطرت له مخې مشخص تشبیهات، استعارې او نومونې لري، چې دده تصویرونه یې ګڼلی شو، داسې نه ده، چې د نورو پخوانې او زاړه نوښتونه یې کارولي، چې د شاعرۍ د سقوط نښه وي، همدغه یې ماته یو ادبي بغاوت او یا نوښت ښکاري:

راشه چې خپل کلي کې سندرې درته ووایم
ته په بازارونو کې شغارې د چنار غواړې

***

یو وخت به ددې خاورې شهیدان ټول راژوندي شي
یو وخت به زمونږ سترګې بیا غړېږي دوی ته څنګه

د فضلیار شاعرې په مجموعې ډول د انځور په برخه کې له ښکلو تشبیهاتو او استعارو نه سرشاره ده، او زیات وخت دغه تشبیه په تمثیل هم اوړي:

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

وایي زما مینه به خپل زړګي کې پټه ساتې
دا ساده ګله رانه لپه کې دریاب غواړي

***

ستا لومړۍ خندا شپېلۍ د اسرافیل وه
یو ځل بیا وخانده شاباس چې ژوندی شم

(په سترګو کې خبرې) غزل ټولګه چې له سره تر پایه وکتل شي، هر ځای پکې فضلیار د یوه پښتون او سپیڅلي ګروهمن په توګه ځپاند دی، شاعري یې دومره سپېڅلې ده، چې د تقلید بوی هم نه لري، داسې نه ده لکه څو تنې او یو سر.

په شاعرۍ کې یې ټولنیز ارزښتونه، مقدساتو ته درناوی په لوړه هنري ژبه تر دې حده دی، چې د خپلې ټولنې عکاسي او انځور یې ګڼلی شو. د پتمن ملت تشخص، د ازادۍ جذبه او د یرغلګرو ماتې پکې د یوې حماسې په ډول په ځپو دي.

زه په پای کې دغه ژور فکر په لالوړ خیال ښکلی غواړم، او ګران فضلیار ته له لوی خدای (ج) نه د خوشال بابا د (پښتون) او د شاعر اسلام علامه اقبال د (مرد کامل) جوړېدو دعا کوم.

په شاعرانه ولولو

ناکار

پوهنتون مېنه
۱۳۸۶/۵/۳۰

د فضلیار لومړنۍ غزل ټولګه

# د غزل پيغلو ماڼو ورته لوګی کړی

د سترګو شاعر (فضل هادي فضليار) په ۱۳۷۹ لمريز لېږديز کال، د ننګرهار په عالي لېسه کې زما د دولسم ټولګي زده کوونکی و. د وطن په حساب مې هم ورسره اړيکې درلودې او د خوږو اخلاقو خو به يې څه نه وايم.

خدای شته چې هاغه مهال يې پر شاعرۍ خبر نه وم خو شعر يې لکه چې پټ ليکه ، ځکه د ډېرو نورو پښتنو په څېر، دده په مالت کې هم دې هنر ته په درنه سترګه نه کتل کېږي. خو اوس پوه شوم چې فضليار لا ډېر پخوا د هنر د کلي په کوڅو کې د غزل وظيفه ټوله کړې ده.

ما چې دده نوښتګره، خوږ ژبې او غزلبوله شاعري وليده، نو حيران شوم چې زما مات او ګوډ قلم به کله دومره توان ولري چې د فضليار غوندې ځلمي په تانده شاعرۍ هنري او ادبي ليکنه وکړي.

فضليار د ځينو نورو ځوانو شاعرانو په څېر بې دانو بوس نه دي باد کړي ، او نه يې هم اسمان د خيال په تيګو ويشتی.

هغه هر څه ته په خپلو شوخو هنري سترګو کتلي او هماغسې انځورونه يې ترې اخيستي. د خيالي نړۍ د ترخو اوبو په سيند کې يې لامبو نه ده وهلې ، بلکې ځان يې د شعر د خواږه اباسين تل ته رسولی او اصيلې ملغلرې يې ترېنه راويستي دي.

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

د فضلیار شعر اخلاقي، دیني، ټولنیز، پښتني، ملي او حماسي ښېګڼې لري. د نکریزو، سرو شونډو، شنو خالونو، بنګړیو او .... په بازار کې ډېر نه دی ګرځېدلی. هغه هر څه ته د حقیقت په سترګه کتلي او هغه یې د ریالېزم د سروزرو په تله تللي دي.

د فضلیار د نقادۍ ژبه اورونه بلوي ، او لکه د څېریو د سکروټو غوندې سرې سپرغۍ بادوي. شعر یې د خوشحال خان د حماسو رنګ لري. خوشحال بابا وایي:

څو وانخلي له غلیمه انتقام
مرد نه خوب کا نه خوراک کا نه ارام

د فضلیار لاندې بیتونه وګورئ:

خپلواکي مې د خپل قام راځخه غواړي
له غلیمه انتقام راځخه غواړي
باغي روح مې د بدن قفس کې تنګ دی
د وحشت پر ضد قیام راځخه غواړي
تر پایه....

د شعر ژبه یې ډېره سپېڅلې، ساده، روانه او رڼه ده؛ او د نورو ژبو له اغېزه یې د غزل جامې پاکې ساتلې دي.
فضلیار که څه هم د عمر زیات کلونه په کوزه پښتونخوا کې تېر کړي خو د هنر خوله یې په بېلمازه اوبو نه ده کنګال کړې.
شعر یې د بدیع او بیان په هنري او ادبي صنعتونو داسې پسوللی، چې سړی ورته ګوته په غاښ پاتې کېږي. د ښه تکړه انجینر او معمار غوندې یې د تشبیې، استعارې او کنایې خښتې په خپلو ځایونو لګولې او د غزل رنګینه ماڼۍ یې ورځخه جوړه کړې ده.

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

فضلیار کشر هلک دی ، خو په غزل کې یې د ډېرو مشرانو پر پلونو پل ایښی ، حیران یم چې دا الهام ورته له کومو غرونو د غزل ښاپېریو راوړی دی. وګورئ ، په لاندې غزل کې د کاظم خان شیدا غوندې ښه پوهېږي خو دار ته په ډېر ویاړ روان دی.

کاظم خان شیدا وایي:

هسې نه چې دار محروم په میدان پرېږدې
که یو سر په تن لرې بلند همته

فضلیار صیب هم ورسره مناسبه سیالي کړې ده ، دا وایي:

ښه پرې پوهېږم چې مې سر په لور د دار روان دی
خو بیا هم شکر دی چې ستا د عشق پر لار روان دی
وطنه! ستا مینه کې ځیني له سرونو تېر شول
د ځینو نورو په همدې نوم کاروبار روان دی

زه ورته دا بیتونه ډالۍ کوم:

داره جنازه مې درنه ونه کړې
ځورند تر قیامته داسې ښه یمه
پاتې که دا زوړ ګرګین له مانه شو
زه به له میرویس نیکه نه نه یمه

فضلیار په پورته غزل کې خپله ایماني او افغاني دنده په ځومره بریالیتوب سره سرته رسولې ، او هنري ارزښتونه یې ځومره خوندي ساتلي دي. خپل سر د وطن له مینې قربانوي او

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

دار ته په خوشالۍ روانېږي، خو د وطن خرڅوونکو او بې ننګو دلالانو له مخونو څخه پردې پورته کوي او راتلونکي نسل ته يې ورپېژني.

زما په اند فضليار د شعر خپل ځانګړی سبک او بېله لار لري ، چې هغه له نورو څخه بېلوي. د هغه د شاعرۍ يو څو ځانګړنو ته په لاندې ډول ګوته نيسم:

د فضليار له شعر نه معلومېږي چې د افغانستان د نورو سيمو لهجې او ګړدودونه يې زده دي ، او په بېلا بېلو پښتنو سيمو کې راته بلد ښکاري.

نور سختې دلته شپې شوې له دې کلي کډه وړم
ترخې د ژوند شيبې شوې له دې کلي کډه وړم
د ژېړو ګلالۍ څېرې سپېرې شوې فضلياره
شروع پکې نشې شوې له دې کلي کډه وړم

په پورتني بيت کې د ( ژېي ) يا د جمعې په بڼه د ( ژېړو ) کليمه د هېواد په جنوبي سيمو ( پکتيا ، پکتيکا او خوست ) کې مروجه ده. ده کمال کړی چې د نورو لهجو رواجولو ته يې هم پام کړی او خپل غزل يې پرې رنګين کړی دی. په لاندې غزل کې يې کندهارۍ لهجې ته پام وکړئ:

کندهاري ياران چې کله راپه زړه سي بارا
په هغه دم مې نو زړګی ذره ذره سي بارا
ژبه مې ګونګه سي بيخي غزل ويلای نسم
خو چې تا ووينم غزلې راشېوه سي بارا
ترپايه....

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

همدارنګه په لاندې غزل کې یې د کوزې پښتونخوا د پښتنو لهجه راخیستې ده:

هر وخت په کې ملګرو شور ماشور غونته کې دی
دا زړه مې بس د څو شوخانو کور غوتته کې دی
سهار نه تر ماښامه مې په ژبه ستا نامه وي
هر لفظ یې په ایمان د ټنګ ټکور غوتته کې دی
تر پایه...

همدارنګه د فضلیار بله ښه برلاسي په شعر کې داده ، چې مهمل الفاظ یې په ډېرو مناسبو کلیمو پسې تړلي او د خپل غزل مقام یې پرې لوړ کړی:

نه ښکلي ملي، نه مې څوک تنکي منکي خوښېږي
خو بیا مې هم دا یو او نیم چټې پټې خوښېږي
نظم چټیاټ ګڼي ازاد شعر ته اور اچوي
د فضلیار خو غزلبوله شاعري خوښېږي

د فضلیار کمال ته ځیر شئ ، چې څنګه ښه یې له (تنکي) سره د (منکي) او له (چټې) سره د (پټې) مهملې کلیمې راوړې دي.

د فضلیار صیب د شعر بله ځانګړنه چې د هغه شعر له نورو ځوانانو څخه بیلوي ، داده چې هغه په سیاسي مسایلو کې ادبي نزاکتونه مراعتوي ، لکه د نورو غوندې کنځلې نه کوي بلکې د واقعتونو له مخه د کنایو او استعارو په ژبه حجابونه پورته کوي.

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

تاسو يې لاندې بيتونه وګورئ، چې په څومره ادبي نزاکت سره د ګاونډيو هېوادونو په اوږو د احسان درون پېټی ږدي او د شوروي تګ لورې ورته څرګندوي. دغه راز د جهاد په اتلانو غږ کوي چې که له روس نه مو مخ  راړولی نه وی، نو کفري لمن به يې له نړۍ څخه نوره هم ټوله شوې وه:

دا خلك دې مونږ ته دُعاګانې کړي
مونږ که نه وای روس تر هندوستانه ته
ولې دې افغانه دومره ژر پرېښود
ستا دوښمن روان و له جهانه ته

دا چې فضليار په يوه علمي او ديني چرګۍ را لوی شوی، پلار او ترونه يې ديني عالمان او نيکه خو يې د طالبانو او ملايانو جرنيل و. نو ځکه يې په غزلو کې ډېر مذهبي څرکونه هم ليدل کېږي.

تاسو وګورئ چې په لاندينيو بيتونو کې يې څومره لوړ ديني مفاهيم په ډېرو لنډو او ساده ټکو کې بيان کړي دي:

زړه! څه چې دې خوښه وي کوه يې خو
پام کوه چې رب درڅخه هير نشي

فضليار زړه ته د هر څه د کولو اجازه ورکوي خو يوائې يو شرط پرې ږدي ، چې خدای به نه هيروي. دده کمال دادی چې همدا يو شرط دومره جامع شرط دی چې له امله يې سړی له هر ناوړه کاره ژغورل کېدای شي. ځکه چې الله د چا په ياد وي نو هېڅکله به بې لارې نشي.

همدارنګه لاندې بیتونه یې وګورئ:

پرته له تقوا پرته له دین څخه
څوک وایي چې ژوند لکه زقوم نه دی

***

هغوی ژوندي دي هغوی ژوند او مینه دواړه کوي
د خدای په لاره کې مړه شوي مونږ ته مړه نه ښکاري
او داسې نور.

همدارنګه د فضلیار له شعر نه د هېواد د ابادۍ ، ملي ازادۍ ، سولې او ارامۍ ورېمې راولاړېږي ، هېوادوالو ته د ښه او نوی ژوند زیری ورکوي ، نهیلي په کې ډېره نه ترسترګو کېږي ، له ټوپک او جنګ څخه کرکه کوي او پر ځای یې د کتاب ، قلم او پښتني حجاب سره مینه لري:

فضل د خدای دی د ټوپک پر ځای ګلاب غواړي اوس
چا چې به کلي ورانول هغوی کتاب غواړي اوس
دده د لاسه مو د مړه نیکه هډوکي خرڅ کړل
خدازده چې نور راڅخه څه شی انقلاب غواړي اوس
ترپایه....

هغه د همدې غزل په پای کې خپل یو خصوصیت او ځانګړتیا ته اشاره کوي او وایي:

نور دې د سترګو او بڼو په ژبو نه پوهیږي
د فضلیار زړه درنه تکه سپین څواب غواړي اوس

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

ريښتيا ده چې فضليار سپيني او زړه ورې خبرې کوي ، او له نورو څخه د هغوی د کړنو سپين حساب غواړي. په غزل او ورځيني ژوندکې له هيچا څخه نه وېرېږي ، د رحمان بابا غوندې نه د چا بې ځايه غندنه کوي او نه هم بې ځايه ستاينه.

ما چې دده جرئت، استعداد، هنري شوخۍ او خوږو اخلاقو ته سوچ کړی، نو دا غزل مې په ذهن راورېدلې ، چې دلته يې فضليار صيب ته ډالۍ کوم:

نه پېچومي کې تم شوی نه په څوږ
دا د هسکو غرو د سپينو واورو چړ
هره چيغه يې ږلۍ د پشه کال ده
چې باران ورسره مل شي جوړ کړي خوږ
غاړکۍ يې د غزل ناوې ته راوړه
ملغلرونه يې جوړ دی هر يو لړ
په قلم او ځلميتوب يې برکت شه
راته ښکاري د پامير له غره نه لوړ
نداره يې چې په سپينه ږيره وکړه
يارمحمد يې د ستايلو بولي ور

زه خپله ليکنه رانغاړم او د فضليار صيب د شاعرۍ په هکله دومره وايم، چې هغه واقعاً خوندوره، ساده او ښکلې پښتنه شاعري کړې ده. زه يې په دواړه مخه ښکلوم او د راتلونکي نسل د وياړ هنري شمله يې ګڼم.

په اشعارو کې يې بې ځايه ، شډل او بازاري لُغتونه نه دي راوړي. غزل يې د پښتو ادب لپاره غټه پانګه ده. د رياليزم په رڼه لار يې قدمونه اخيستي او د خپلو همزولو نه يې د غزل لاره

بېلـه کـړې ده. لـه ښـاره وتـی خـو نـرخ يې نـه دی پرېښـی، د قـافــيـو خـونـد او د شعــر طــول او عــرض ورنـه نـه دی خــراب شـــوی. زه وربـانـدې ويـاړم ، مــور و پـلار او ټـولــو پښــتـنـو تـه يې مــبـارکـي وايـم.

بې عــيـبـه يـوائـــې الله دی ، انسـان کـه هـر څـومـره پـيـاوړی او تـکــړه شي بـيـا هـم نـيـمـګــړتـيـا لــري ، داسـې بـه د ده پـه شعــر کـې هـم نـيـمـګــړتـيـاوې يي. خــو فضليـار خـپـلــو نـيـمـګــړتـيـاو تـه هـم پـاخـه او هنري رنګونه ورکړي.

زه پـه پـای کـې دده تـانـدې هــنـري څــوانـۍ تـه د دُعــا لاســونـه لـــپـه کـــوم او پـه لانـدې ډالـــۍ يـې لـمــانځــم:

د پګړۍ بـلا دې واخلــم د شــملې دې را پـــه ســر شــه
خدای دې وسـاتـه له سترګو غليمـان دې له نظـر شـه
له سـپين ږيرو نه يې وروسته،هلکان دې نيـوی نـشـي
د غـزل تـوره تـېـره کــړه لـــږ څـــه نـــور هـــم زړور شــــه
سپوږمۍ ونيسه له لاسه ستوري ټول پـه خـوب ويـده کـړه
د غزلـو لمـر دې خـور پـه پـښـتـونـخوا کـې لـروبـــر شـــه
خدای دې دواړه پـه جنـت کـړي کـوچی داســې درتـه وايـي
فـضـلـيـاره دا کــتاب دې مـور او پـــلار تـــه بختـــور شــــه

پـه پښـتـنـه مـيـنـه

استاد يار محمد (کوچی)

د کـوچـيـانـو کلـی، قـصـبـه، جلال اباد

# د فضلیار پېژندنه

فضل هادي فضلیار د منځني قد ، سپین رنګ او له خندا ډکې څېرې لرونکی تنکی ځوان دی؛ چې له ننه درویشت کاله وړاندې یې د محترم مولوي عبدالعزیز په کورنۍ کې نړۍ ته سترګې پرانستې دي.

څرنګه چې هغه د سره رود د نوموتي عالم مولوي علي احمد (چې په جرنیل صیب مشهور و) لمسی دی، او د یوې دیني او مذهبي کورنۍ پورې تړاو لري؛ نو د ښو او بدو له پېژندو سره سم یې دیني زده کړې پیل کړې. فضلیار د وخت په تېرېدو سره ځان له جوماته ښوونځي ته ورسوو ، د ننګرهار له عالي لېسې فارغ شو او د کابل د پولیسو اکاډمۍ جنايي څانګې ته لاړ.

فضلیار خپلې ښوونیزې هڅې نورې هم ګړندۍ کړې، د ننګرهار پوهنتون تر انګړه ورسېد؛ او اوس د همدې پوهنتون د انجینرۍ پوهنځي د پنځم کال زده کړی (محصل) دی.

فضلیار هغه د چا خبره ژوندۍ مرۍ ده، د لوړو زده کړو ترڅنګ په فرهنګي برخه کې هم ډېر فعال دی او د خپلې ژبې سره د بې کچې مینې له امله د فرهنګي ډګر په سرلارو کې راځي.

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

هغه مخکې د مینې مجلې د کتونکې ډلې غړی او تر ثنګ یې د پژواک خبري اژانس پري لانس ژورنالست و. خو اوس مهال د نړۍ مجلې مسئول مدير او د ځوان کلتوري خوځښت د علمي او څېړنيزې څانګې مشر دی. دغه راز د يو شمېر نورو خپرونو سره قلمي همکاري هم لري.

فضليار د خپلې شاعرۍ په څېر ډېر خوږ او د نرم خوی څښتن دی. ډېرې خبرې نه کوي ، او بې ځايه کړتې پړتې يې نه خوښيږي.خو د ځينو ملګرو په اند د مينه ناک طبيعت ترڅنګ ډېر شوخ هم دی ، او يو شمېر ياران يې له شوخۍ څخه سر ټکوي.

په هر حال د هغه خوځنده قلم او ګړندۍ فرهنګي هڅې د ستايلو دي. زه ورته ددې غزلتولګې د چاپ مبارکي وايم او خپله ليکنه د حمزه بابا په دې بيت پای ته رسوم چې وايي:

خدای دې مين ډېر کړي چې ښېرې کوي
ماته خو نور چل د دُعا نه راځي

نصيراحمد ښاد
د ځوان کلتوري خوځښت مشر

د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

***

فضل د خدای دی د ټوپک پر ځای ګلاب غواړي اوس
چا چې به کلي ورانول هغوی کتاب غواړي اوس

وایي زما مینه به خپل زړګي کې پټه ساتې
دا ساده ګله رانه لپه کې دریاب غواړي اوس

چې خپل عزت ، قدر او پت یې په کې ولیدلو
په اروپا کې ګوره پیغلې نور حجاب غواړي اوس

اول یې ویل راځه لیلام یم په تاوان یم یاره
د هرې خولې د هرې غېبږ رانه حساب غواړي اوس

دده د لاسه مو د مړه نیکه هډوکي خرڅ کړل
خدازده چې نور راڅخه څه شی انقلاب غواړي اوس

هغه بې عقله چې له تانه یې ځان ښکلی ګاڼه
دادی راغلی دی، مافي هغه ګلاب غواړي اوس

نور دې د سترګو او ښو په ژبو نه پوهیږې
د فضلیار زړه درنه تکه سپین ځواب غواړي اوس

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

کاش په هر اشنا مې ګران لکه ماشوم شم
کاش د هر دښمن پر سر لکه اتوم شم

د دې خپل زړګي په زړه کې به مې اوسم
کاش جانانه دومره خوږ لکه ستا نوم شم

غواړم ستا په شان پري ځان ته واده کړم
غواړم سم د کوه قاف د پاچا زوم شم

پولادي زړه مې پوښتنه درنه کاندي
چې دا ولې ستا په مخ کې لکه موم شم؟

ځان ظالم او کبرجن راته ښکاریږي
خو چې ستا کبر رایاد شي ، نو مظلوم شم

پر سینه دې سپین که تور تیکری خوښیږي؟
راته وایه چې په دې دواړو کې کوم شم؟

فضلیاره خیر که اوس ورته هیڅ ښکارم
خو که وخت راغی نو بیا به ورمعلوم شم

***

د وخت نادودو ناکردو کې به ترکله اوسي
نور به مې روح او جسد دواړه یو تر بله اوسي

ستا ټول غمونه چې هر یو یې لکه غره غوندې دی
زما د زړه کونج کې ځائیږي بل ځای ځله اوسي

تر څو چې هاغه پورې غره کې خونخور باز اوسیږي
د سولې شنه کوتره دې کلي کې کله اوسي

خدایه! د هر مین برخلیک د هاغه باغ په څېر کړې
چې د نري چنار تر څنګ پکې شنه وله اوسي

رب دې زمونږ د چم پر ښکلو باندې ورحمیږي
د ښکلاګانو قاتلان بیا ډله ډله اوسي

ته بې وفا د **فضلیار** له زړه چې لاړې نو څه؟
هاغه ده هلته پر هماغه ځای اوس بله اوسي

د ساینس او ټکنالوژۍ اسلامي پوهنتون

د فضلیار لومړنۍ غزل ټولګه

د مصطفی سالك پر لیکه

***

پوهېږې اوس مې څنګه بې له تانه زندګي ده ؟
جانانه! وه جانانه! بلا ګرانه زندګي ده

د سترګو له یو رپ سره یې څو کسو نه واخلي
ددې وطن د خلکو څه ارزانه زندګي ده

پښتون یې چې ونه ګڼې کوم بل څه ورته وایه
د چا چې بې حجرې او بې اذانه زندګي ده

چې یار یې وي ، کوکنار یې وي او رحم پر خوارانو
د داسې خلکو بالکل بې ارمانه زندګي ده

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

بې مينې ، بې لـتانه ، بې لــه ياده دې جــانانه
بې عقلـه او بې روحــه بې وجـدانه زندګي ده

چې نه پکې عزت وي ، نه غيرت او نه مـــېړانه
هغـه ګـورئ ملګـــرو بـې ايمــانه زندګي ده

سـره له دې چې ډکـه ده له رنځــه فضليـاره
خـو بيا هـم ګـوره مينه څه کامـرانه زندګي ده





***

داسې خو نه ده چې تنها مې په زړګي کې اوسې
ته په ګلاب ، ته په شفق ، ته په سپرلي کې اوسې

ته د تروو اوبو ماهی يې د جانان انځوره !
تل مې د سترګو په رڼه سمندرګي کې اوسې

زړګيه! ټوله ورځ کې يو سات هم په خپل ځای نه يې
بس همېشه د يار د غاړې په ځوندي کې اوسې

د جانان خيال، مضر چينجيه! پام چې مات يې نه کړې
څومره بې پامه مې د سر په وچ لرګي کې اوسې

د يار وصاله! ته هم سم د خپلواکۍ غوندي يې
ماته کې نه ښکارې په سيوري د بري کې اوسې

نورو نه ولې ستا پوښتنه وکړم وه کم عقلې!
ته خو هر وخت ګوره زما په خپل زړګي کې اوسې

اوره ! د ټولو عاشقانو کې دې وخت تېر کړی؟
کنه تنها د **فضليار** په اسوېلي کې اوسې

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

ته رانه واخلي د فریب او دا د چل ملګري
خاونده راکړي په زړه سپین لکه ململ ملګري

والله پر ما باندې خو زور د رقیب نه رسېدو
زما خلاف ورسره یو شول زما خپل ملګري

ستا له نظره ولې پټ ګرځي پوهېږې په دې؟
زما زړګی همېشه ځان ساتي له غل ملګري

که امریکا ، روسیه او چین خپلو کې هر څنګه وي
زمونږ خلاف ګورئ بیا ټول دي یو د بل ملګري

د ازاد شعر غوندې کاږه واږه مې نه خوښېږي
غواړم خواږه او په لاړ سم لکه غزل ملګري

د دولسم ، لسم او اووم یاران به څنګه هېر کړي
د فضلیار چې اوس هم یاد دي د اول ملګري

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

ټول خوی او خواص دې بس همدا ښه دي بدل مه شه
نيت د بل ملګري دې هيڅکله درته غل مه شه

زلفې ، شونډې ، زنه او دا سره سره اننګي دواړه
ټول دې ګل او ګل شه، خو په سترګو کې دې ګل مه شه

زړه دې لېونی ښه دی چې ليکې لېونۍ غزل
عقل دې الله وساته عقل دې پاګل مه شه

څه چې دې په زړه کې وي پوره دې ارمانونه شه
هر څه دې خدای درکاندي، خو را درته اجل مه شه

نظم، يګتۍ او نور د دوی په څېر شعرونه دې
شي دې ، پروا نه کوي خو خاورې دې غزل مه شه

دا دُعا په نيمه شپه کې شوې فضليار ته ده
ده هم پرې آمين کړی چې توري دې خجل مه شه

د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

***

بس یو ارمـــان لـه خــدایـه غـواړي بل ارمـان نه لـري
زړه مې جـانان لـه خدایـه غــواړي بل ارمــان نه لـري

د خلکو مینځ کې جنګ، جګړې او په اخر کې جرګه
دا ملــکان لـه خدایه غــواړي بـل ارمـان نـه لـري

دا جینکۍ چې په لمانځه کې دُعــاګانې کـوي
دوی هلـکان لـه خــدایـه غــواړي بـل ارمــان نـه لـري

چې ډک لـه مــینې محبت نه وي بس هر یو شاعـر
داسې جهـان لـه خدایه غـواړي بـل ارمان نه لـري

فـضلـیـار تل یـو پرمـختللـی او ســوکاله غـوندې
افغـانسـتـان لـه خـدایه غـواړي بـل ارمـان نه لــري

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

راشه د ګل غوندې سپرلي غوندې بشر درښيم
ځان ته دې وګوره بس دغه شان نفر درښيم

د زلفو وربځو کې يې پټ ساته که روغ مې غواړې
دا لمرين مخ دا د مېن د مرګ خطر درښيم

عجب مقتول دی، خپل قاتل لکه ايمان پرې ګران دی
مړې! خو خپل زړه او دا ستا مړاوی نظر درښيم

په هغې ژمنې دې بلا مازيګرې واوښتل
تا چې ويل همدا راتلونکی مازيګر درښيم

باور مې نشي چې له تور غره نه دې کم وې ګرانې!
ستا په سينه کې دا د تورو تيږو غر درښيم

ته يې خوښيږې (( لمر )) په تا باندې مين دی ګلې!
دا چې دا ځمکه باندې ګرځي دغه لمر درښيم

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

دا امکان شته چې د دُښمن لاسونه ښکل شي رانه
د چا لپاره به سرکوزی هم اتل شي رانه

تا به خوشحال ساتم که ته چېرته خفه شوې رانه
کېدای شي یاره چې د ژوند ډېوه مې ګل شي رانه

افغانستان په څېر ویجاړ زړه مې په دې سوچ کې دی
چې ګاونډي لېوان به منعه په څه چل شي رانه

کله چې لست د ګلو لیکمه ، نو نه پوهېږم
چې ستا نامه ولې په ټولو کې اول شي رانه

جانانه! ستا راخپلول خو دومره سخت کار نه دی
خیر که په دې عمل پردي دغه ټول خپل شي رانه

هغه خبره دې ریښتیا شوه چې ویل به دې تل
له خپله لاسه به ( فضل ) غریب پاګل شي رانه

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

په زوره کور پرې جوړوي څه ستمګره ده یار
یو څوک مې زړه کې لاس وهي لکه کوډګره ده یار

اوس تر کورونو رسېدلې په دېرو کې کېږي
زمونږ د مینې کیسه تېره تر ګودره ده یار

زما د زړه باغي مرغه چې یې تابع کړ ځان ته
دا د ظالم لور ګوره څومره زوروره ده یار

طبیبه ! یار هېرول څه مانا خپل ځان کړمه هېر؟
زما له واکه څخه دا بهر خبره ده یار

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

پام چې د شېخې مخکې څه ورانه خبر ونه کړې
چې همدا اوس راکوزه شوې له ممبره ده یار

چتې غوسه یې زړه ! په ما کې څه ګناه خو نشته
په نه خبره رانه هسې مروره ده یار

انجینری غوندې خو وخت د فضلیار نه نیسي
غزل لیکل خو د یوې شېبې خبره ده یار

ننګرهار پوهنتون



***

الله خبر چې هر سړی پسخېږي دوی ته څنګه
دا زړونه له سینې نه ورکولېږي دوی ته څنګه

دا ښکلي د اسمان خو مونږ ته ستورو غوندې ښکاري
چې ښکلي ددې ځمکې به ښکارېږي دوی ته څنګه

مشرانو خو خپل زړونه په دې خلکو ښه تش کړي
ډک زړونه ددې خلکو به خوتېږي دوی ته څنګه

دا مستې جینکۍ چې یو پر لاس کړي نو دوه مات کړي
بنګړو نه مړوندونه به ډکېږي دوی ته څنګه

یو وخت به ددې خاورې شهیدان ټول راژوندي شي
یو وخت به زمونږ سترګې بیا غړېږي دوی ته څنګه

دا خلک فضلیار غوندې مینو ته حیران دي
چې شوخې به په زړونو کې منجېږي دوی ته څنګه

***

ښه پرې پوهېږم چې مې سر په لور د دار روان دی
خو بيا هم شکر دی چې ستا دعشق پر لار روان دی

وطنه! ستا مينه کې ځيني له سرونو تېر شول
د ځينو نورو په همدې نوم کاروبار روان دی

څنګه به وويني ښه ورځ زمونږ غټ خيټي مشران
چې ورپسې د مظلومانو لوی ازار روان دی

اوس د پيسو له شماره وتې ده خبره نوره
اوس د موټرو او کورونو دلته شمار روان دی

لکه چې بيا يې اوربدلې د چا مسته غزل
فضليار ګوره پر لار هغسې خُمار روان دی

د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

***

تر اوسه زړونه د اغیارو لا ساړه نه ښکاري
لا مې د زړه په غوښو دوی راته ماړه نه ښکاري

هغوی ژوندي دي هغوی ژوند او مینه دواړه کوي
د خدای په لاره کې مړه شوي مونږ ته مړه نه ښکاري

اوس خو مې دادی له سینې څخه غټ شی ورک شوی
اوس دې هم تا ته مړه کاته لکه چې غله نه ښکاري

پام کوه بیا دې په سینه چې لونګ څوړند نه کړې
د پاچاهۍ پر تخت مې ماته بل څه ښه نه ښکاري

لکه لیوه وهي ټوپونه هر یو ښکلي پسې
دا په سینه کې مې پروت شی خو ماته زړه نه ښکاري

خدای خبر ولې فضلیاره په تا څه شوي دي
اوس دې بریتونه د پخوا په څېر کاږه نه ښکاري

***

نه ښکلي ملي ، نه مې څوک تنکي منکي خوښيږي
خو بيا مې هم دا يو او نيم چټي پټي خوښيږي

هغه ياري نه ده چې څوک پکې ونه ځوريږي
ما ځوروه زما يارۍ کې اسويلي خوښيږي

څوک احمدزي،څوک ستانکزي ، څوک خوګياڼي خوښوي
زما په ټولو پښتنو کې اپريدي خوښيږي

له مجبورۍ او احتياجې څخه امان غواړمه
خو خپل جانان ته مې زارۍ او مجبوري خوښيږي

زه به دې غم اخلمه ، درد اخلم ، بلا اخلمه
سپينه خولګۍ خو دې اشنا د هر سړي خوښيږي

نظم چټيات ګڼي ، ازاد شعر ته اور اچوي
د فضليار خو غزلبوله شاعري خوښيږي

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

تا هېرولی نشم ګرانه تا به لا يادوم
روح به ستايمه ، ضرور به خپله سا يادوم

مخکې ډېر بنه وم چې وزګار به شوم رايادہ به شوې
اوس چې تسپې اړوم پام مې شي چې تا يادوم

خلکو ته ناست يم له سهاره تر ماښامه پورې
ورته لګيا يم نور نو څه خو ستا جفا يادوم

په ژوند خو ستا هېرول بالکل ده ناشوني خبر
له مرګه پس به هم په ژبه مسيحا يادوم

ستا د يوې خولې شکرانه کې زه يوه شپه ټوله
څادر په سر کړم د جومات کونج کې الله يادوم

تا فضليار ته مې هم خوله او هم خپېړه درکړه
ته راته هاغه يادوه او زه به دا يادوم

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

سترګې خو نه دي ، تباهي ده ، بربادي د خلکو
د غنم لـو غونډې پرې يار زړونه ريبي د خلکـو

يوه پوښتنه مې په زړه کې ده ريښتيا به وايې
دا چې منګي دي ډېر مات کړي که زړګي د خلکو؟

دا ځني ځني چاپلـوسي لکه هنر غونډې وي
دا ځني ځني خو چتې ځپلـې ښـتې د خلکو

منم چې (مستـه) يې خو پام ګرانې چې سهوه نشې
هغه (حيا) ده چې زړګي همېشه وړي د خلکو

د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

لګــيا دي غــاړو کې يې هـار د غلامۍ اچـوي
خـو په وينا کـې ستـايي دغـه ازادۍ د خلکـو

زمـونږ په چـم کې خـو د هر چا تکـه زيړ اوښتي
خدازده په څه وي داسې تـک سـره اننګي د خلکو

هيـڅ پروا نه کړي فضـليـاره که يې وخت ګڼي سپـک
خيـر دی رسـېږي تـر خـالـقه اسـويلي د خلکـو



د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

ما که قلندر غواړې او ما که تل خُمار غواړې
ما که بې پروا له نړۍ، ما که تل هوښیار غواړې

اې د جانان یاده ! نو یواځې به مې نه پرېږدې
راشه ، که مې چېرته د غزل سپه سالار غواړې

افرین افغان ځوانه! همدا د وطن مینه ده؟
خپل وطن ویجاړ پرېږدې، پردي وطن کې کار غواړې

راشه چې خپل کلي کې سندرې درته ووایم
ته په بازارونو کې شغارې د چنار غواړې

بس کړه فضلیاره کوم بل څه خو هم ترې وغواړه
څو پورې به خدای نه دُعاګانو کې یو یار غواړې

***

ان تر سهاره ستا له یاد او اداګانو سره
لګیا یم ټوله شپه لوبېږم له دېوانو سره

د کلي پېغلو په ګودر کې ځنګه پرېکړه وکړه؟
چې دوی به څه کوي له خپلو لېونیانو سره

د رقیبانو تور مخونه او کوڅې د کابل؟
ښکلی جنت کله ښاییږي له کارغانو سره

رقیبه! تا خو ګیدړانو کې هم نه شماري څوک
خو ګوره مونږه جنګېدلي یو لېوانو سره

وېل یې زما دې دا ښکاري سترګې نور نه دي پکار
د مین سترګې ښې ښکارېږي ژړاګانو سره

چې په ژړا مې ورته سرې کړې نو شین سترګې ویل
خدازده که سوله حزبیان وکړي پرچمیانو سره

کابل-منځنی طب

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

غومبوري دې زما د وینې وېش باندې لګیا شول
دې کار ته نن دوه غټې بلاګان سره سلا شول

جرګې د معشوقو له خدایه سپین او سور رنګ وغوښت
د زېړ رنګ په ټاکنه عاشقان سره سلا شول

یو څوک له کوه قاف نه راشي وایي مبارک شه
له تا سره خپلوۍ ته ښاپېریان سره سلا شول

الله ! دغه خواره واره پر یو مشر راټول کړې
داړلو ته یې بیا د غرو لېوان سره سلا شول

بانه دې یاره پوه کړه چې لږ رحم نه کار واخلي
ایستلو ته زما د زړه د کان سره سلا شول

پوښتنه ترینه وشوه چې په ژوند قیامت دی څه شی؟
ځواب ته یې مین ټول په ( هجران ) سره سلا شول

سبا به فضلیار لکه منصور غوندې په دار کړي
په دې پرېکړه نن واړه ملایان سره سلا شول

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

پـوره پـوره یقـین لـرم تـاثـیر بـانـدې د زلـفـو
تړلـی بـنـد پـه بـنـد یـمـه زنـځـیـر بـانـدې د زلـفـو

دا څـو شپې خـوب کې ګـورم پکـې اوړمـه را اوړم
اه شـېـخـه ! ژر مې پوه کـړه پـه تـعـبـیر بـانـدې د زلـفـو

مـال دومـره مـهـم نـه دی د ځـان ویـر څـه پـروا نـه کـړي
اختـه دې نـه کـړي خـدای هـیڅوک پـه ویـر بـانـدې د زلفـو

ناصـحـه ! تـا یې هـم لـکـه چې خـونـد ولـیـد کـه څـنـګـه
بـیـخي نـن نـه مـړېـږې پـه تـفـسـیـر بـانـدې د زلـفـو

د هـر زړه یـو ځـای خـوښ وي خـو زړګی د فضلیار بـیـا
همېـش اوسـېـدل غـواړي پـر کـشـمـیر بـانـدې د زلـفـو

***

خالق دې د ښکلا له بامه وغورځوه مړه شي
د کبر او غرور له تخته لاندې راچپه شي

زړګی بېچاره دلته په تمپونو شي خیر غواړي
چې کله ته په بر سر د کوڅې کې راښکاره شي

کابله! کور د هیلو شې چې نوی مشر راشي
خو څو شپې وروسته بېرته بیا د هیلو هدیره شي

خفه جانانه بیا به هسې وخت کله رانشي؟
چې نورو نه رامنډه کړي پر ما خوره وره شي

ډېر زړونه دې سوري کړل خو په تاهیڅ هم ونشول
په زړه باندې ډبرینې کاش په زړه لکه ښینبه شي

چې سترې فضلیار غېږ کې ارام او بیا ویده کړي
الله خبر که دومره مهربانه لکه شپه شي.

***

واړوه نور خـاورې د هـغـې شــپې پـر کـيسـو بـاندې
زه شــوم پـه زاريـو سـتـړی تـه شـوې پـر نـخـرو بـاندې

زړه ! حـال بـه يې ستا غـوندې وي مړ بـه لـه شـوګيره شي
څـوک چې اعـتـبـار کـوي د ښـکـلــو پـر وعـدو بـاندې

هـر څـه چې کـوڅه کې وکـړو هـيـچـا تـه حـال نـه وايـي
دغــه اعــتــبـار لــرو د اوړي پـر غــرمـــو بــانـدې

ناسـتې وي کـرارې کـور کې هـر څه نه بې غـمـه دوی
دا ظـلـم کـه رحــم دی پـر پـېـغـلـو پـښـتـنـو بـاندې؟

اوس يې چې کـوڅـه کې فـضـلـيـاره بې ديـدنـه يې
هـسې ژړېـدلـې پـه سـفـر کې پـر شـپـو شـپـو بـاندې

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

د کمین صیب پر پل

***

تر څو به په چل ول باندې قدم راسره ږدې
لاسونه به په دروغو په قسم راسره ږدې

چې زه دې شرابي کړم ته خو هم ځان لږ خُمار که
ضرور به دا ځل شونډې په چلم راسره ږدې

که غواړې یې نو زه خو یې تنها غږوی نشم
رباب باندې به څو ګوتې ته هم راسره ږدې

ماښام خو دې بانو باندې کړ تېر، اوس نیمه شپه کې
وعده د یوې خولې په سپېده دم راسره ږدې

چې ماته دې په خپلې سینې ځای راکړ نو ګوره
یو څو پیالې د بنګو به نو هم راسره ږدې

زما پر نازک تن به فضلیاره غرض نه کړې
بس یو به دغه قول ښه محکم راسره ږدې

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

د زړه په تل کې مېشته کېږي بل ځای نه اوسېږي
مینه په وینه کې ګډېږي بل ځای نه اوسېږي

نوره یې مخه د سپېرو خاورو په لوري واوړي
څوک چې له یار نه جلا کېږي بل ځای نه اوسېږي

جانانه! تا نه دې غمونو کې وفا ډېره ده
هغوی له نورو نه شرمېږي بل ځای نه اوسېږي

له ټول بدن نه شوې راټولې د دردونو څپې
د زړګي لور ته راستنېږي بل ځای نه اوسېږي

که د ویجاړ وطن غمونه دې په کار وي نو ټول
د فضلیار زړه کې اوسېږي بل ځای نه اوسېږي

هریپور

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

دلته ګوزاره شوه له تور فکرو سره سخته نور
ښکلیه ! که زما منې له دې کلي نه تښته نور

غوارې چې زما له خولې د خپل حُسن صفت واورې؟
پرېږده دا د وخت نادودې مه راڅخه پوښته نور

بې د لمر د وړانګو به لمرګلیه! ژوندی پاتې شې؟
دلته شوه د ښکلو قحطي، زړه حسن پرسته نور

ولې فضلیار باندې چپه مېچنې ګرځوې
خدای ته ګوره راشه له دې کاره تېر شه وخته نور

***

نور سختې دلته شپې شوې، له دې کلي کډه وړم
ترخې د ژوند شېبې شوې، له دې کلي کډه وړم

د مینې سمندر یم په لمبو کې مې ژوند خوښ دی
چې مړې په کې لمبې شوې، له دې کلي کډه وړم

چې ظلم پکې ځای دی اوس نیولی د جرګو
چې شاړې یې دېرې شوې، له دې کلي کډه وړم

نه غره کې کېږدۍ ښکاري، نه په کلي کې ګودر
هر لور ته هدیرې شوې، له دې کلي کډه وړم

بدرنګ غوندې مخلوق ورته له بل ځای راروان دی
ترې کډه ښایستې شوې، له دې کلي کډه وړم

د ژړو ګلالۍ خبرې سپېرې شوې فضلیاره
شروع پکې نشې شوې، له دې کلي کډه وړم

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

لږ خو مې زړه دمه کړه بیا که ځې هم نو خیر
یو وار خو سترګې راښکاره کړه بیا که ځې هم نو خیر

یا مې ټپې ټپې زړګې ته شه پټۍ او ملهم
یا یې نور هم تغمه تغمه کړه بیا که ځې هم نو خیر

دا د چینار په شانتې دنګه بنګه ونه خو دې
لږ تاو راتاو، کږه وږه کړه بیا که ځې هم نو خیر

ګېډۍ د زلفو دې له ځان سره همداسې مه وړه
ښه یې پر ما خوره وره کړه بیا که ځې هم نو خیر

په خوله که بله وعده نه راکوې خیر دی ګرانه
لږ یې په سترګو نوشته کړه بیا که ځې هم نو خیر

راشه دلبره **فضلیار** دې ډېر نهیلی ښکاري
لږ یې پخلا، لږ یې ډاډه کړه بیا که ځې هم نو خیر

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

تنکي تنکي ګلان په سپېره خاوره کې پرېږدي
دا ولې لارویان دې نیمه لاره کې پرېږدي

منم چې د اساني ورځې به مېړنی یار یې
خو دريغه سرې ډېر ژر بیا په ګرانه کې پرېږدي

ای وخته! چې راځي خلک پر ځان باندې رامات کړې
چې ځې نو زنځیرونه یې په غاړه کې پرېږدي

ښکاري چې کله ښکار وکړي نو ځان سره یې یوسي
خو ته بیا سوري زړونه لویه لاره کې پرېږدي

راځي خو په نامه د پسرلي مګر افسوس چې
اغزي بیا د زړګي په دښته شاړه کې پرېږدي

ښکارېږي **فضلیاره** چې یې زړه دی درخوړین کړی
د خپل ژوندون کیسه چې نیمه ژباړه کې پرېږدي

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

هره شپه راځي په خوب کې په خندا تا راپه یاد کړي
څه ساده او کلیواله شان ښکلا تا راپه یاد کړي

که د ورځې ستا خونخور یاد له رنځور زړه نه بهر کړم
تور ماښام راته بلا شي سپوږمۍ بیا تا راپه یاد کړي

نا آرام زړونه چې واړه د آرام غېږه کې نغاړي
دا زړه سوانده نیمه شپه خو ماته لا تا راپه یاد کړي

منظره یې چې ما ستا په تورو څڼو کې لیدلې
اوس نو هر یو سنځل ګل جلا جلا تا راپه یاد کړي

فضلیار به ستا له یاده ګورستان ته کډه وکړم
خو په ګور کې به بیا هم هره بلا تا راپه یاد کړي

***

زما زړه چې ستا یادو کې ژوند کوي دا یې د ژوند راز
سمــندر چې په لمبو کې ژوند کوي دا یې د ژوند راز

ساده نه دي ښې پوهیږي چې د ناز افسون څیګر خوري
خو پېغلوټې چې نخرو کې ژوند کوي دا یې د ژوند راز

چې ارام له نازه ډک ژوندون پریږدي په خپله خوښه
ځي مجنون په سرو مېروکې ژوند کوي دا یې دژوند راز

نه هیڅ زور شته پرې نه ظلم،دا د ټول بدن واکمن زړه
چې په خپله پرهرو کې ژوند کوي دا یې د ژوند راز

ټول عالم بېغمه پروت چپه چوپتیا ده په جهان کې
**فضلیار** چې شوګیرو کې ژوند کوي دا یې د ژوند راز

***

چې ګلونه ستا وربل کې بیا شول ځای لیکه پر لیکه
اُمیدونه مې ګوګل کې بیا شول ځای لیکه پر لیکه

سپینو ستورو غوندې ټول ستا د نامه سپېڅلي توري
زما د زړه په تاج محل کې بیا شول ځای لیکه پر لیکه

پسرلی په ننګرهار کې لنګوټو نه معلومېږي
د نارنج ګلان هر ول کې بیا شول ځای لیکه پر لیکه

زما زړه به په څه حال کړې چې پوځونه د شکلاوو
ستا د سترګو په مورچل کې بیا شول ځای لیکه پر لیکه

تا چې ځان سره څه وېلي فضلیاره په قلاره
هغه ټول دادي غزل کې بیا شول ځای لیکه پر لیکه

***

زړه مې په سترګو دی مين د سينې څنګ نه مني
افغان جانان مې له جنګ سترې دی نور جنګ نه مني

همېش خُمار وي او زنګېږي د خيالونو په ټال
د چا په زړه کې چې وي مينه هغه بنګ نه مني

دوی له ټوپك سره بلد دي، صرف ماشه پېژني
لاس يې ببلچې ته نه ورځي ، زړه يې کولنګ نه مني

مين د سوي زړه نغمې بل څه کې نه ويني چې
بې د بلبل له فريادونو بل آهنګ نه مني

دغه پرديو رالوی کړي نور خيالونه لري
دا بې فرهنګه فرهنګ څه کوي فرهنګ نه مني

پښتون يې مه بوله چې يو د تورې شرنګ پېژني
خوشال خو ستايي د ادم د رباب ترنګ نه مني

خر فضليار ته خو مې ډېر د سره پالنګ وويل
خو په سنګر کې په شوګير روږدی، پالنګ نه مني

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

لمر نور له غرونو پنا کېږي لږ خو راشه کنه
زړه مې نرى نرى خوږېږي لږ خو راشه کنه

د رقيبانو غمازانو هيڅ پروا مه لره
خير چې هر څه اوس راپېښېږي لږ خو راشه کنه

د زړه په تل کې مې پرتې دا ورستې شوې هيلې
ستا په راتلو چې راټوکېږي لږ خو راشه کنه

د ذهن پاڼه مې نور سپينه شي هر څه ترې هېر شي
صرف ستا تصوير پرې انځورېږي لږ خو راشه کنه

هغه تازه زړه مې باور وکړه چې بې له تانه
بس ورځ په ورځې مړاوى کېږي لږ خو راشه کنه

ته چې ترې لاړې فضليار بېچاره ټوله ورځ اوس
په لاره ځان سره غږېږي لږ خو راشه کنه

دیوچاپر لیکه

***

کله ځان راڅخه ورك شي کله ورك شمه په ځان کې
کله خاورو کې اوسېږم کله سترګو د جانان کې

زما مینه او ستا کبر د افغان او جاپان غوندې
یو تر اوسه لا رنځېږي ، بل اوسېږي په اسمان کې

ستا غمونه مې په زړه کې واه واه څومره ښه ښکارېږي
لکه تیته چې رمه شي په سرسبزه بیابان کې

ددې وخت دا ناخبره مسلمان چې ترې کړېږي
ددې هرې یوې ستونزې د حل لار ده په قران کې

سپينو ستورو غوندې ټول يوه اسمان كې سره اوسي
دا پښتون، تاجك، اُزبك چا كړل پيدا په يو افغان كې

منم دا چې زما مينه دې په زړه كې شته خو دومره
لكه پروت چې كوچنی ګل وي په ساحه د كهكشان كې

مقتديانو! فضليار غريب يو څه وسواسي شوی
خير كه نن يې د بل چا نامه كړه ياده په اذان كې



***

پیالې دي بې اثره او کنډول دی خدای وهلی
هر څه نه مزه لاړه، جهان ټول دی خدای وهلی

پخوا چالاک شیطان ته هم، صرف یو لغمانی بس و
اوس خدازده څه پرې وشول، لغمان ټول دی خدای وهلی

کونړ نه څه ګیله او نورستان نه څه اُمید دی
چې خپله د وختونو سندربول دی خدای وهلی

پرتوګ له پښو ووتو، نېکر او پطلون راغی
لونګۍ شوله بې قدره او پکول دی خدای وهلی

نور لاړو، د اتڼ له هر میدانه ډېران جوړ شو
اوږدې څڼې بې تابه شوې او ډول دی خدای وهلی

والله چې **فضلیاره** ملنګۍ کې هم څه نشته
تسپې بې اهمیته شوې ، کچکول دی خدای وهلی

لغمان

***

په اداګانو ، سترګکونو ، اشارو ولاړ دی
والله د ښکلو ژوند خو ټول بس پر نخرو ولاړ دی

زما له زړه نه خو دا ستا غمونو جوړ کړ کابل
اوس نو پرې ځکه (سوله ساتی) د پردو ولاړ دی

څو به مو نورو ته وي سترګې د امېد نیولې
کله به وايو چې هېواد مو پر پښو ولاړ دی

هسې چټې ترېنه دا خلك د خوښۍ تمه کړي
د عاشقۍ ژوندون خو ټول پر اندېښنو ولاړ دی

د ننګرهار ګلاب ، زما زړه او انار د کندار
درېواړه وياړي چې يې رنګ ستا پر لېمو ولاړ دی

شېخه ! چې ولې مونږه تاته چندان ښه نه ښکارو؟
د خدای طاعت لکه چې ټول بس پر تسپو ولاړ دی

ګلمخې! راشه مسافر يار دی خدای بيا راوستو
ورك فضليار دې د ګودر پر څنډو شنو ولاړ دی

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

بس ټولې سیمې د زړګي مې نور تر خولې ډکې دي
ستا له یادونو ددې ښار واړه کوڅې ډکې دي

چې راځي نه، تصویر دې مه رالېږه څه پرې کوم
ستا تصویران خو څه لږ نه دي ترې باغچې ډکې دي

ددغه چم له پېغلو جونو به څوك څه ګیله کړي
چې یې له زرو فسادونو نه ورې ډکې دي

خدایه ځنګلونه خو یې ورېبل اوس بل څه وایي
چې له الماسو ددې وران هېواد درې ډکې دي

دلته د ورځې هم ډاډه څوک ګرځېدلای نه شي
داسې خو نه ده چې له ډاره مو صرف شپې ډکې دي

خندا خو څه کړې اداګانې هم پر خپل ځای پرېږده
والله د مینې له اثره دې ګیلې ډکې دي

یوه خو نه ده، دوه خو نه دي، درې څلور هم نه دي
د فضلیار له غزلونو کتابچې ډکې دي



د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

# اطرافیان

څه ساده خلک یو چې څوک راته راوګوري لږ
مونږه ورمنده کړو لاسونه ورته دواړه ورکړو

مونږ اطرافیان بس په هر چا کوو د خپلو ګومان
څوک چې راپاڅي تالاشۍ ته مونږه غاړه ورکړو

دوی مو په شوارو واسکټونو کې بمان لټوي
مونږ ورته جېب نه موټي کورت راواخلو واړه ورکړو

مونږ ساده خلک په تګۍ او برګۍ نه پوهېږو
چې څوک مو خوښ شي نو بس زړونه په ولاړه ورکړو

د سر په بيه له خپل حق نه تېرېدلای نشو
دي ته حاضر یو چې دوستۍ کې ورته دواړه ورکړو

کابل- پولیس اکاډمي

***

کله کله ازاري شې ګني نور د ژوند قرار يې
عشقه ! څومره بختور يې له يو زړه نه بل ته لاړ يې

کبرجنه ! خلک اخلي غلامان په لوړو بيو
زه چې هسې ستا غلام يم ته له ما څخه بېزار يې

سره ښاديان څه په غرور درته راغلي وو وطنه!
خو له تانه خبر نه وو چې پرديو ته انګار يې

هجره! خير اوس خو مې يار يې، راته وايه چې دا ولې؟
د زړګي له غوښو پرته نور له هر څه نه بېزار يې

که پر زړه د فضليار دي بارانونه د غمونو
د نړۍ ډېرو غمو کې د جانان غمه سردار يې

***

که ملامت یم او که نه یم نور توبه جانانه
خیر دی بخښنه درنه غواړمه خفه جانانه

د سمندر زړګي په مینځ کې مې تاوېږي مدام
ستا د یادونو زوروره شان څپه جانانه

ولې له خپل پخواني کور داسې په څنګ تېرېږې؟
کله نا کله خو مې غېږې ته راځه جانانه

باور دې وشه ستا له تګ سره یو ځای ووته
زما له ژونده د خوښیو جنازه جانانه

نور به هغه خبره نه کړم چې ستا خوښه نه وي
نور به د هر کار درنه غواړم اجازه جانانه

باور مې نشي چې دې وشي هیڅ امکان نه لري
د فضلیار پرته له تانه ګوزاره جانانه

***

که راغلې نو دا ستا د سترګو ښکار درته درښیم
پر زړه به مې تر ټولو ستر پرهار درته درښیم

له غره راڅوړند رود به درنه هېر کړي که دې ولید
ددغې ګلالۍ جینۍ رفتار درته درښیم

شربت غوندې يې غړپ که ای د وخت غلام زلمیه!
نور څه درسره ښایي خو بس زار درته درښیم

کم عقل دی چې هر څه ورته وایم نه صبریږي
دا زړه ، دا په اور سوی سور انګار درته درښیم

عجبه ده ، هر څه يې د دوستۍ په نامه وکړل
وژنې ، ورانونې او بمبار درته درښیم

توبه! دا عزرائیل هم عجیبه غوندې انسان دی
ها پاس خو نه، جانان د فضلیار درته درښیم

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

قتل پسې بیا راوتي دوه غبرګې خونکارې دي
خدایه زړه مې ساته نن یې بیا سترګې خُمارې دي

ثنګه تر خوا درشمه او څرنګه دې ښکل کړمه
شا او خوا لښکرې د بېلتون خونې ولاړې دي

ستا په کشمیر مخ هندوې زلفې پیردارې خو
زما له افغاني غازې نظره سره ورانې دي

هیڅ د مینې راز او دعشق ناز پکې ښکارېږي نه
ځار دې شم له سترګو څنګه نن داسې ناګارې دي

خدای خبر چې بیا دغه د زاڼو کتارونه نن
کوم لور ته هجرت کوي پر کومه خوا روانې دي

ته خو نازنینې ځې راځې چې ګوندې غلا یې کړې
پام کوه د زړه مې بدماشانې څوکیدارې دي

***

خدای خبر نور دې لا کوم وخت او زمانو ته پرېښی
دا دومره غټ حساب دې یاره کومو شپو ته پرېښی

تاسو پوهېږئ چې دا خدای پاک ولې غرب نه وهي؟
هغه یې هم افغان پکول او لنګوټو ته پرېښی

ته چې ترې تلې نو خوب دې ولې ووړ له ځانه سره؟
ماشوم زړګی مې دې جانانه شوګیرو ته پرېښی

ملا ! را اوځه له مسجد نه امامت څه کوې؟
سیاست دې ولې دې مضرو حشرو ته پرېښی

د خلکو زړونه یې پر لاره باندې وکړل ټول
د فضلیار یې د زلفانو زولنو ته پرېښی

د فضلیار لومړنۍ غزل ټولګه

***

مینه، خندا، ټوکه، ادا به بیا له کومه کوې
سختو حالاتو کې دعا به بیا له کومه کوې

چې هم دې وژني او هم خوند په کې له ژونده ډېر وي
داسې نظر داسې مسکا به بیا له کومه کوې

غروره! پام کوه چې یار درنه خوابدی نشي
ساه اخیستل د زړه درزا به بیا له کومه کوې

وخته! دا څو ښکلي بې قدره نه کړې پام پرې کوه
داسې پښتو داسې تقوا به بیا له کومه کوې

سپوږمۍ په ( لمر ) ډېر ظلم مه کوه که مړ شي ګوره
ته به هم خواره شې رڼا به بیا له کومه کوې

ډالۍ: درنو صبورجان او غیورجان ته!

***

کــنـدهــاري يــاران چې کـلـه راپـه زړه ســي بـارا
پـه هـغـه دم مـې نـو زړګـی ذره ذره ســي بـارا

دا تـه نـو چـېرې يې چې نـه ښـکارېږې وه ظالـمه !
هسې نـه ژونـد مـې درپـسـې ايـره ايـره سې بـارا

ژبـه مـې ګـونګـه ســي بـيـخـي غــزل ويلای نـسـم
خــو چــې تـا ووينــم غــزلـې راشـــېوه ســي بـارا

بـس ګــرده ورځ لـکــه پـايـلـــوچ ايـلـه ايـلـه ګــرځـېږم
تـه څـونـه ښـه يې چې رايـاد سې ورځ مې ښـه سي بـارا

کـه بـيـا خـوابـدی سوې نو بـيـا بـه دا نـړۍ ورانـه سي
بـيـا بـه مــې ګــرده ســره زړه بــس لــولـپـه ســي بـارا

کندهار

***

دا پروا نه کړي چې څوک ګېډۍ ته خواړه نه لري
سخته ده دا چې د یار سترګو ته رانجه نه لري

څوک چې ماغزه لري ضرور به هغوی غم هم لري
څوک چې په زړه نه لري غم هغوی ماغزه نه لري

د رقیب حق دی چې خپل ځان د خلکو سیال وګڼي
ځکه چې هیڅ په لمن داغ لکه کارغه نه لري

ښار کې مو کار نشته دی هر سړی اوزګار ګرځیږي
کلي کې نشته دی اوبه ، غر مو غرڅه نه لري

وخت به بې خونده څنګه نه وي وخت به خود ګډوډ وي
وخت بې غیرته په لمن کې پښتانه نه لري

په فضلیار باندې ملګرو کې ډېر ګران هغه دی
چې هم بریتونه ، هم ویښتان او هم بانه نه لري

***

سپین سان مې اوس په تورو سترګو خور دی که راځې
بس نور مې نو سفر د ګور په لور دی که راځې

دا تاته زما تن چې نه زړګی لري نه روح
وه غمه د جانانه ! ډېر ښه کور دی که راځې

یواځې همدا ته مې د رنځور زړګي ارزو یې
له نورو نعمتونو مې زړه تور دی که راځې

ظاهر وجود مې مه ګوره چې روغ رمټ ښکارېږي
دننه مې زړګي اخیستی اور دی که راځې

ها تا چې کبرجن ګاڼه مغرور دې ورته وېلې
هماغه **فضلیار** درته سرتور دی که راځې

د عامې روغتیا روغتون - جلالکوټ

یوې بهرنۍ مېلمنې ته!

***

ګوره لومې ، جال او زولنو سره به نه راځې
زلفو تار په تار خورو ورو سره به نه راځې

دا خلک تیارو کې دې بلد سترګې یې برېښ کوي
دې ځای ته د لمر د پلوشو سره به نه راځې

مرګ دې راشي مرګ له دوی نه سل ځله بهتره دی
ژونده ! د بېلتون له تورو شپو سره به نه راځې

سترګې دې په کور کې پرېږده بیا راځه زما خواته
دلته دانه تېرو تمانچو سره به نه راځې

بې له ښکلو راشه فضلیار دې هرکلی کوي
پام کوه د مرګ له پرېښتو سره به نه راځې

د رڼې او پښمنې خور مريم ناصري ته!

***

نهيلې مه شې خورې خپل پت به حتمي ساتې
ځوانان به وګورې چې څنګه خپلواکي ساتې

د ملالۍ سکنۍ خويندې نو په څه شوئ تاسې؟
چې سنګرونه مو يوائې اوس زلمي ساتې

د څو ټيټ سترګو او پردو په سر دې نشي بدنام
ډېر زلميان شته دی چې هوډونه ايوبي ساتې

که توپ، ټوپک، توره او ډال ورسره نه وي ، خير دی
پښتانه ښه دي په کورو کې تبرګي ساتې

زمونږ شپونکي اوس روږدي شوي په ښېدياوو کې دوی
خپلو رمو سره ضرور څو دانې سپي ساتې

کېدای شي دا ځل دغه چم لکه ميوند وځلي
د ملالۍ خواص چې ځان کې (ناصري) ساتې

***

د ګلاب د ګل غوټۍ شولې که څنګه؟
ايله اوس نو د يارۍ شولې که څنګه؟

پولادي زړونه په يو نظر سکاره کړې
جادوګره بنګالۍ شولې که څنګه؟

دا چې تل د پېغلو مخکې يې روانه
سرلښکره ابدالۍ شولې که څنګه؟

په هر چا به لکه واوره ورېدلې
خو پر ما لکه ږلې شولې که څنګه؟

څنګه لاس پر مخ حيرانه ودرېدلې؟
پښېمانه په خولګۍ شولې که څنګه؟

والله ډېر زيات ځورول دي اوس ياد کړي
نوره لاړې کابلــۍ شـولې کـه څنګـه؟

ستا دي مستو حرکاتو کړم بې خوده
ټوله جوړه له مستۍ شولې که څنګه؟

فضليار ته اوس غوسه او کنځل نه کړي
ګلې! نوره سکـــنۍ شولې که څنګه؟



***

ستا د سترګو، د کتلـو بلا واخلم
ددې دوه غبرګو قاتلـو بلا واخلـم

ستا لپاره ستا د وارو غلامـانو
د نړۍ د ټولو ښکلـو بلا واخلـم

برند راوګوري بیا ځان سره مسکۍ شي
ددې درد ، ددې درملـو بلا واخلم

زه د ځان او کـه د ستاسې غـوندې یاره
د تک زیړ ، که د سرو ګلو بلا واخلـم

ښار دې ورک شي، د خپل کلي د پېغلوټو
د ټیکـریو د وربلـو بلا واخلـم

د ګلانو هر څوک اخلـي فضلیاره!
ستا په شانتې د بلبلـو بلا واخلم

***

په عــاجـزۍ کــوم غـوښــتـنه پیره
کـوه د زړه مــې لــړ پـوښــتـنه پیره

روح او جسد مې دا ستا غبرګ مریدان
غــواړي لــه تــا ســـره لــیدنه پیره

تک سپین بشر او تکې تورې جامې
مـــه کـــوه ډېره تـولـــوژنه پـیره

څومـره لــه کـوډو او تاثیر ډکــه وه
هغــــه اول ځـلـــې کـــتنه پیره

درنه بې لارې شاعـــري مـــې نشـي
ښـه یې پـه غـور کړه څـارنـه پـیـره

چې هم شي خوږ، هم نازکخیالـه داسې
د تـخـــــیـل غـــــوا ړم روزنـه پـیـره

که دې دا خـواست د فضلیار ومـانه
نو ســـل او زر ځلـــه مـــننه پیره



***

زړه، عقل که روح وايه چې کوم نه دی؟
دوی کې ستا په مينه چې مسموم نه دی؟

څوک دی د دوزخ د ســرو لمـبو لايق؟
چـا ايمــان راوړی ستـا پر نوم نه دی؟

ډاګ دی، قبله نه ښکاري لمونځ څنګه کړم
کـور د جانان هـم راتـه معلــوم نه دی

زړه مې په هر ســت باندې پوهېږي اوس
اوس لکـه پخوا غـوندې ماشــوم نه دی

پرته لــه تقـوا ، پرته لــه دين څخه
څـوک وايي چې ژوند لکـه زقـوم نه دی

ټول دې اوس تـرې په ښـاپېرو پــورې
وايــې دا هـــلک د انـــسان زوم نه دی

زړه د فضـلـيار يــې دړې وړې کـــړ
چا ويلــې چې غم دې بم اتـــوم نه دی

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

د خاطر اپریدي په لیکه

***

د انکار ټکو کې اقرار دې وکړ
ګرانې! دا څه عجیبه کار دې وکړ

دا و نظر او که د غشو باران؟
چې دا زما د زړه پر ښار دې وکړ

تا په نفرت ګوره هیڅ نه وو کړي
خو نن په مینه د زړه ښکار دې وکړ

زه یې رېښتیا کړم در په دره ګلې!
هسې چې تې د ناز ازار دې وکړ

ستوري دې ورکړل خال دې واخیستو ترې
اسمانه! چل زما په یار دې وکړ

هسې هم روږدی یې زړه ، خیر دی که نن
ان تر سهاره انتظار دې وکړ

اوس ( اناالحق ) څه؟ تا به هلته منم
چې دغه غږ پر سر د دار دې وکړ

واک دې د خولې نور فضلیار ته ورکړ؟
دومره باور او پر ما خوار دې وکړ؟



د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

پام زړه! چې دې ژوند لکه ګنډېر نشي
بيـا د يـو چا ياد درنه چاپېر نشي

کله څـوک د يـار رضـا مـوندلای شي؟
څو پـورې لـه خـپلـې رضـا تـېر نشي

هيـڅکلـه فـراق ورتـه ونـه وايـې
ژوند چې دې سور اور، خواږه ګنډېر نشي

زړه! څه چې دې خوښه وي، کوه يې خو
پام کـوه چـې رب درڅخـه هـېر نشـي

وامـې وربـدل ودې ويـل هـجـر تـه
پام چې فضليـار درنه کوشـېر نـشي

***

د خپل نامه په خوا کې (ګل) لیکي
زما د نوم سره (بلبل) لیکي

زهرو او شاتو نه جوړ لیک رالېږي
چې یو سلام او یو کنځل لیکي

د وخت قلم د هغه چا پر تندي
چې ډېر وژونکی وي ، اتل لیکي

زه قافیه او ردیف نه پېژنم
د وطن غم پر ما غزل لیکي

زمونږه هر ګاونډی خپل پلان کې
پاس د (چور) لفظ لاندې (کابل) لیکي

توری د ( یار ) په (فضل) څومره ګران دی
په ځان پسې یې متصل لیکي.

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

ستا د مستۍ او نخرو څه کمی دی
د اباسین د څپو څه کمی دی

څله مې زړه باندې داغونه پوښتې
د یخ پر مخ د خولو څه کمی دی

زما غوښتنې که هر څو ډېرې دي
دا ستا په خوله د پلمو څه کمی دی

وایه د جنګ که د ورانیو وکړم؟
زمونږ د ژوند د کیسو څه کمی دی

دلته یې توپ او ټانګ جوړه غړوي
په دې وطن د نغمو څه کمی دی

صرف ماتول یې زده کوه پۍ مخې!
تاته د زړه د ښیښو څه کمی دی

د فضلیار بې پروا خیاله! پام کړه
دلته د دار زولنو څه کمی دی

***

زړه ته يې زما چې زولنې نه کړي
لنډې لنډې زلفې دې اوږدې نه کړي

ولې هسې خون د مين زړه اخلې؟
پام کوه چې شونډې دې بيا سرې نه کړي

هسې خو راځې نه تر څو پورې چې
هيلې مې په زړه باندې ورستې نه کړي

زه اوس اموخته يم خوله په زور اخلم
ګوره چې دې ځان بې حوصلې نه کړي

نور مې په مات زړه چې لوبې ونه کړي
هسې نه چې ځان درباندې پرې نه کړي

غېږ ته د جانان به ور ونه رسې
څو چې فضلياره شپې رڼې نه کړي

د فضليار لومړني غزل ټولګه

***

څنګه به له ما دومره ارزانه ته؟
ستا عِشْق به د سر په بیه مانه ته؟

دا خلک دې مونږ ته دُعاګانې کړي
مونږ که نه وای روس تر هندوستانه ته

کان د زمرودو خپله هم ژړل
کله چې وتو له بدخشانه ته

ولې دې افغانه دومره ژر پرېښود
ستا دُښمن روان و له جهانه ته

پاس فضا کې هم افغانان شته که څه؟
څنګه د باروت بوی له بارانه ته؟

راغلې خو له تللي دې ونه پوښتل
ولې له دې خاورې پښېمانه ته؟

مخه مې د ( آه ) تا ولې ونيوه؟
ستا له لاسه ان تر اووم اسمانه ته

هسې دې غزل د فضليار تم کړ
دا خو تر حمزه او تر کاروانه ته



د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

قــد د صــنوبر لــري دلــبر ربـه
حسن لکه لمـر لـري دلــبر ربـه

خلک يې بانه بولي خو سترګو کې
سم لکه خنـجر لـري دلـبر ربـه

دا چې بې له وېرې ځي راځي دلته
ځان بـاندې باور لـري دلــبر ربـه

تېر شي له ټټر زړګی سوری کاندې
څـومـره خـوږ نظر لـري دلـبر ربـه

زړه نـه دی ، لـه تکـو تـورو تيـږو نـه
جـوړ سـينه کې غـر لـري دلـبر ربـه

داسې نه چې صرف همدا بې رحمه ده
دغــه شــان ټبر لــري دلــبر ربـه

ورحــمــېږې تـه پـر فضليار بـاندې
زښـتـه ډېـر خـطـر لــري دلـــبر ربـه

***

پکې پیدا که د ژوند شور جانانه
جوړ که زما په زړه کې کور جانانه

لږه په شونډو کې مسکۍ غوندې شه
لږ مې زخمي زړه که ټکور جانانه

لرې کړه نوره دنداسه له خولې نه
پر زړه مې مه بلوه اور جانانه

راځه د شرم له هسک غره راټېر شه
راشه په زړه مې شه راخور جانانه

ځار دې شي زر ښایسته او سل غنمرنګ
له تانه ای زما تک تور جانانه

په یو نظر چې زړه دانه وانه کړې
رب دې اوبه کړه دغه زور جانانه

فضلیار مه وژنه په پښه چاړه
ورپسې راوړه دا ځل لور جانانه

***

کله د ادم د رباب ترنګ شمه
کله د ابدال د توري شرنګ شمه

کله غلیمان په ماته سر کړمه
کله خپلو وینو باندې رنګ شمه

شا مې د میدان په لوري نه شوله
مخامخ روان شمه غورځنګ شمه

زه د چا اتوم بم ته احتیاج نه یم
ځار د خپل ولس له نام او ننګ شمه

زور دعقیدې مې خدایه کم نه کړې
هسې نه چې هر ډګر کې ړنګ شمه

سرومال مې دواړه له وطنه ځار
خیر که په دې لاره کې ملنګ شمه

وخت د ضرورت کې به ټوپک اخلم
نور به مل د بېل او د کولنګ شمه

زه پښتون زلمی اوس پوهېدلی یم
غواړم چې په پوهه کې هم دنګ شمه

مال او متاع رنګ د ژوندون نه ګڼم
مینه کې چې پړ شم نو بدرنګ شمه

غواړمه ملګرو فضليار غوندې
ښکلو ته په غاړه کې لونګ شمه



د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

***

شا او خوا زما د سترګو اوس رڼه ده
پکې بله چې دا ستا د مخ ډیوه ده

د نړۍ منظرې ټولې مې شوې هېرې
ستا د سترګو څومره ښکلې منظره ده

په نخرو د پېغلو ډله کې روانه
دا د سرو کالو جلۍ څومره خوږه ده

راځه مه ځه یو سات کېنه د یار یاده!
سهار لرې دی تر اوسه نیمه شپه ده

د خپل وران کابل ښکلا چې مې لیدلې
د نړۍ له نورو ښکلو مې توبه ده

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

ستا د مینې شنې ښنترې پرې ولاړې
څه سرسبزه مې د شوخ زړګي دره ده

د کابل ښار شویه ښاره! زیری زیری
ستا د پېغلـو ډلـه بېرته راستنه ده

فضلیاره اوس په مینه ښه پوهېږې
خلک هسې درته وایې چې وره ده



***

سخت شولو ګوزران، چې دا بـه ځنګه شي
نه راځي جانان ، چې دا بـه ځنګه شي

زه درتـه پـر ځمکـه انتـــظار کـړمـه
ته شوې د اسمان، چې دا به ځنګه شي

لـوټې لـوټې خاورې دې کـړ، وران دې کـړ
زمـا د زړه جـهان، چې دا بـه ځنګه شي

خلک د ژوندون پـه خوند مـړېږي نه
مونږ ورته حیران، چې دا به ځنګـه شي

بس د مرچو ځـټه باندې ناست دي ټول
زوړ دی او که ځوان، چې دا به ځنګه شي

ښـه او بـد نـه ګـوري فـضـلـیار مـني
ستا هر یـو فرمان، چې دا به ځنګه شي

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

پرېږده ستا په سینه خور لکه ټیکری شم
د دې غیرو خلکو سترګو کې اغزی شم

ستا لومړۍ خندا شپېلۍ د اسرافیل وه
یو ځل بیا وخانده شاباس چې ژوندی شم

سپېلنی یم خو د ښکلو وچکالي ده
ربه ! یو ښکلی پیدا کړې چې لوګی شم

لېونی شم په ځنځیر نه سړی کېږم
خو چې یو سوک د یار وخورم نو سړی شم

سل ګیلې او زر غوښتنې مې وي زړه کې
خو چې تاته درنژدې شم نو ګونګی شم

د ماشوم غوندې مې نور غېږ کې وانخلې
راځه ته غېږې ته راشه چې زلمی شم

***

کله هر وخت کله لږ تم درځمه
د وخت له دوده سره سم درځمه

د ګل په وار بورا دی کله منعه؟
ته مې ښکنځه زه به بیا هم درځمه

د سینې لار دې راته خلاصه پرېږده
د زړه کعبې ته په حرم درځمه

ګله ! که شا او خوا دې ټول اغزي شي
زه نیمه شپه سپور په شبنم درځمه

د بې شرمیو پلیتیو نه پاك
لکه پښتو ، لکه زمزم درځمه

چې مې په قدر باندې نه پوهېږې
خیر فضلیاره نور به کم درځمه

***

له هر کار نه یم وېستلی د یار سترګو
په زړګي یمه ویشتلی د یار سترګو

ساده سترګي مې په جنګ کله پوهېږي
هر میدان ترینه ګټلی د یار سترګو

څه دوه ، دري او یا څلور واري خو نه دی
په بار بار یمه رټلی د یار سترګو

نه پوهېږم چې کوم عیب، اخطار او ډاردی
زما سترګو کې لیدلی د یار سترګو

دا چې اوښکې مې له سترګو نه بهېږي
دغه حال رالورولی د یار سترګو

فضلیار ته بل چا هیڅ ویلي نه دي
دا له کلي راشړلی د یار سترګو

***

ته که د بل شې ژوند به څه شي یاره
ګومان مې نه شي چې دې وشي یاره

پرته له تانه خو سپرلي هم ګوره
خزان خزان سپېره سپېره شي یاره

ژوندکې به داسې وخت هم راشي کله
چې مې د زړه داغونه ښه شي یاره؟

ټول ارمانونه د نهیلي ژوند مې
په څورېدو څورېدو مړه شي یاره

خپله یې نه غواړې که ویې غواړې
کور به ویجاړ د بېلتانه شي یاره

زړه چې مې چا کې صمیمیت وګوري
نو ټول خواص یې د واړه شي یاره

چې فضلیار کله ستا سوچ کې لاړ شي
نو یې خولګۍ اوبه اوبه شي یاره

ډالۍ: خپل مشر تره مولنا محمدادريس (حقاني) ته! چې په
ډېر ترخه وخت کې مې ډېرې خوږې شپې ورسره کړې

***

روح، زړه او جسد مې لوړ په لوړ شول نور
يو يې د اسمان دوه يې د ګور شول نور

تور زما د سترګو ولې نه راځي؟
سپين زما د سترګو پسې تور شول نور

اى د ژوند اسرې! پرته له تانه خو
خوب،خوراك او څښاک راته پيغور شول نور

بس دى فضلياره په ژوند څه کوې
بخت او تخت دې دواړه رانسکورشول نور

ککړك

***

تا نه ډېر جانانه بل څوک نشته دی
نه پاس په اسمان او نه په ځمکه خوږ

ماته مې چرسي لالی رایاد کاندي
بوی د چرسو لګي پر ما ځکه خوږ

دوی وایي جانان دې نمک نه لري
زړه وایي جانان دی بې نمکه خوږ

وپوښتل یو چا چې پښتانه ولې
نه ګڼي بل هیڅ څه تر ټوپکه خوږ؟

بیا هغه خبر وکړه چې وېل به دې
دا د ظالم زوی دی بې درکه خوږ

یاره فضلیاره فکر نه کوم
بل به نو کوم ځای وي تر (ککرکه) خوږ؟

پاس پچیر

***

ارمان ارمان ساتل یې نه پېژني
ښکلي فقط د زړونو وړه پېژني

ددې مهال یاران الفت څه کوي
دوی خو فقط پیسه او سره پېژني

زما په زړه کې یې عمرونه تېر کړل
خو ما تر اوسه پورې نه پېژني

زما غریب چې صیب ، جناب نه دی زده
نو ریښتیا څوک به ما په څه پېژني

***

بې له مینې چې ناشوني ده، دې چم کې
بلـه هره ګـناه شــوني ده، دې چم کې

مینه ستا مې په زړه نوې روږدې نه ده
دا بـلا ډېره لـرغوني ده، دې چم کې

دا د زړه دا مینه ناکه شان مرغۍ مې
له تعجبه غونې غونې ده، دې چم کې

دا چـې وایـي مـینه جـرم دی ګناه ده
دا وینا بالکل ریښتوني ده، دې چم کې

د الفت د بناپېرۍ خدایه ته مل شې
ډوبه شوې نور تر ستونې ده، دې چم کې

فضلیاره تـه یـو چـا تـه خـواږه ګـورې
دا خـبر ګوره مرګــوني ده، دې چـم کـې

ککړك - سره رود

***

زړه کې مې دواړه روح او وينه لا شته
پکې ستا ياد پکې ستا مينه لا شته

چېرته به زړه شي له دې کلي صبر؟
چې پکې هاغه نازنينه لا شته

بچې د کرکې ننګرهاره وايي
څنګه تر اوسه دلته مينه لا شته؟

راشه په خپل رنګ يې رنګينه کړه نور
د ژوند په پاڼو کې مې سپينه لا شته

يو فضليار دی چې بې ميني ګرځي
که دلته بل څوک هم بدبينه لا شته

یوې لانجمنې ښاپیرۍ ته!

***

یوازې ستا خو نه دي ډېرې دي یار
لانجې بېخي له حد نه تېرې دي یار

د څو بدرنګو او ترخو له لاسه
خوږې خبرې رانه هېرې دي یار

نیمه په کور نیمه په بند کې والله
میاشتې د ژوند مې داسې تېرې دي یار

اوسني وخت کې او ریښتیني مینه؟
دغه خبرې پخوا تېرې دي یار

ستا د سیالۍ پکې څوک نشته ګني
جینکۍ دلته کې هم ډېرې دي یار

د زړه له غوښو مې تر اوسه پورې
ستا اداګانې لا چاپېرې دي یار

***

ښه يې سپک لکه د خلي که جانانه
رقيبان مې غلي غلي که جانانه

دا سپېرو سپېرو وختونو پسې راشه
پسرلي غوندې يې ښکلي که جانانه

ستا پيکي ته زما زړه خداى پيدا کړی
سيخکي ترينه راکولي که جانانه

خير د زړه له يو څه وينو څخه تېر شه
يوه سمه غزل وليکه جانانه

فضليار د خپلو بدو بخښله غواړي
ترمې اوښکي يې قبولي که جانانه

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

ډالـۍ: د خوګیانو په لوخې کې د ملك محمد قیاس درنې کورنۍ ته، چې پر جلالکوټ د امریکایي بمبارۍ پر مهال یې ډېرې ستونزې په ورین تندي راسره ګاللې وې.

***

خپلواکي مې د خپل قـام راڅخه غواړي
له غلـیم نه انتقـام راڅخه غواړي

باغي روح مې د بدن قفس کې تنګ دی
د وحشت پر ضد قیام راڅخه غواړي

تنګ غـیرت مـې پېغـورونه راکوي تل
هغـه خپل شهـید امام راڅخه غواړي

عجیبه ده چې تقـوا په چا کې نه وي
هغـه څنګـه احـترام راڅخه غـواړي

فضلیـاره مقـتول زړه سره څه وکړم
د مسیح د خولې سلام راڅخه غواړي

لنډۍ-خوګیاني

د فضلیار لومړنۍ غزل ټولګه

***

زخمي دې نه کړي يـاره په قسـم دی خــطرناک
تنکی مخ دې ترې ساته چې شبنم دی خــطرناک

يو وخت به مې شي زړه ټوټــې ټوټــې هوا ته پورته
يو څوک يې مینځ کې پروت لکه د بم دی خطرناک

حيران يم چــې دې څنګه دا مغـــروره دلاسا کړه
ملا صاحب! د ځان په څــير دې دم دی خطرناک

بس ټک پسې بل ټک شي په زړه غبرګ ټکونه راکړي
هر ناز يې په والله لکــه لـــړم دی خطـــرناک

وېرېږم د چا ياد يې ريښـې غوځې نه کړي خدايه
هر وخت د فضليار زړه ته اړم دی خطـــرناک

***

نا آرام زړه مې آرام راڅخه غواړي
یاره ستا د شونډو جام راڅخه غواړي

ستا لیدو سره نن ونه لړزېدلو
زړه مې ځکه اوس انعام راڅخه غواړي

یا مرګی او یا جانان، لاسلیک دې وکړه
مینه داسې استعلام راڅخه غواړي

د زړګي مې بله هیڅ غوښتنه نشته
ستا یادونه تل مدام راڅخه غواړي

ژوند مې يوڅه، تن مې بل څه، روح مې نورڅه
يـاره! ښـه بـد دې تمــام راڅخه غواړي

ډېرڅه شته چې خوښ مې نه دي ، خو يې وايم
هغه ټول مې خپل عوام راڅخه غواړي

تـه دا زړه ، دا ســتا د زلفــو مــين ګــوره
لېونی په خپلـه دام راڅخه غــواړي

يـار بـه څنګـه شـي؟ دا زړه يـې فضليـاره!
هر سهار او هر ماښام راڅخه غواړي



د فضليار لومړنۍ غزل ټولګه

***

بس ډز ته وي تیارې دواړو غبرګو کې مرمۍ
جانان همېشه ګرځوي په سترګو کې مرمۍ

یو وخت دلته تېر شوی چې ښښتې به وې خدایه
په ونو، انسانانو او په چرګو کې مرمۍ

د ښو او د خوږو تورو پر ځای پکې پرتې وي
په خولو د ځینو ځینو غنمرنګو کې مرمۍ

د وس یې خدایه نه یو په خپل فضل یې کړې شنډې
دا پورته الوتکو ځوانیمرګو کې مرمۍ

د فضلیار لومړنی غزل ټولګه

***

ته چې لاړ شې ستا يادونه نور هم ډېر شي
دا دروغ دي "چې څه تېر شي هغه هېر شي"

که پلو دې کړ ترې لرې ، لمر به خوار کړې
ټول شمسي نظام به ستا له مخ چاپېر شي

پر دې خوار زړه مې هيڅوک بريالي نه شول
چاته ترې د تورغر چاته پنجشېر شي

څه يوه ورځ خو مې نه ده، تل دا حال وي
څو زه لاړه ورته نيسم جانان تېر شي

پر کابل د وحشت دور راپه ياد کړي
د يار ياد چې مې له زړه څخه چاپېر شي

دا څو بېته به په خلکو کې ژوندي وي
فضليار به له يارانو څخه هېر شي

***

بې پوښتنې بې سلامه راغی نېغ څوک
په زړګي مې راداخل شو لکه تېغ څوک

د همدې لپاره خدای مونږ ته راکړي
سر به نه کړي ای وطنه له تا دریغ څوک

خدای مې یار ته هسې سترګې دي ورکړي
لکه ورکړي سپین ښامار ته لاس کې تېغ څوک

فکر نه کړم که جنت کې یې سات تېر شي
چې یو ځل د یار په مینه کې شي دېغ څوک

لکه زه چې یې د زړه وینې ورزبېښنم
دې مجلس کې راته ګوري داسې تېغ څوک

فضلیار بیخي له ځانه خبر نه و
خو په زړه کې یې بیا ناست و اېغ و بېغ څوک

درانه استاد ناګار ته!

***

روسان پر ټوله لاره، کوي خلکو ته کيسې
افغـانه! ستا لـه ډاره، کوي خلکو ته کيسې

ټکول که مې نړۍ کې،د مېړانې يو سمبول دی
لونګۍ مې هم چلتاره، کوي خلکو ته کيسې

يو وخت به يو شمېر خلک، په نښتو اوازونو
د غـرب په هره لاره، کوي خلکو ته کيسې

که اوس دې هغه تېر وختونه نشته پروا نه کړي
غــزلې دې ناګاره کوي خلکــو ته کيسې

د فضليار لومړنی غزل ټولګه

***

دا جلــۍ مــې پاس په بلــۍ څـو ځلــې لــيدلــې ده
مـا خــو پــه خـطــر کــې نـړۍ څـو ځـلــې ليدلــې ده

دروغ وايـي د ځـان د سـپـېـڅـلـتـيـا پـه هکلـه دروغ وايـي
(لمـر) سـره مې وربـځ کې (سـپوږمۍ) څو ځلې لـيـدلې ده

مـور دې راتـه غلـه ښـکاره شـي ستا سـترګې چې ووينـم
مــا يــوه بې ســترګــو هــوسۍ څو ځلــې لـيدلې ده

خـدای خـبـر چې ولـې يـې ښــېـراوې هـيـڅ قـبـلـيـږي نـه
رب تـه پـه سـجـده مـې څـېـړۍ څـو ځلــې لـيدلې ده

پام چې فـضـلـيـاره د طالــب پـه نوم منـکـر نشې
ستا پـه سـر مې سپيـنه لـونګـۍ څـو ځلې لـيـدلې ده

د فضلیار لومړنۍ غزل ټولګه